


د پوهنې وزارت

# پښتو

## څلورم ټولګی

(د دري ژبو لپاره)



د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ.ش.

پښتو - څلورم ټولګی

(د دري ژبو لپاره)

بسم الله الرحمن الرحیم



د پوهنې وزارت

# پښتو

## څلورم ټولگی

### (د دري ژبو لپاره)

د چاپ کال: ۱۳۹۷ هـ.ش.



# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** پښتو

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د پښتو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** څلورم (د دري ژبو لپاره)

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af



# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولــو کور دی
د پښــتـون او هـــزاره وو
ورسـره عرب، گوجـر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېـــواد به تل ځلیږي
په سـینـه کې د آسـیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عـــزت د هـــر افغان دی
هر بچی یې قهرمـــان دی
د بــلـوڅـــو د ازبکـــو
د تـرکـمنـــو د تـاجکـــو
پامیـریـان، نـورسـتانیـان
هــم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمـر پر شـنه آسـمان
لکـــه زړه وي جـاویـــدان
وایــو الله اکبر وایو الله اکبر

# د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د اللّٰه تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

# فـــهرست

# لومړی لوست

## الله جل جلاله

**موخه**: د دغه لوست موخه د الله ﷻ په یووالي ایمان درلودل دي.





**پوښتنه**:

موږ او تاسې د چا بنده‌ګان یو؟

**الله ﷻ یو دی. شریك نه لري.**

**موږ د الله ﷻ بندګان یو.**

**موږ مسلمانان یو. د الله ﷻ عبادت کوو. زموږ نېك عملونه د الله ﷻ عبادت دی.**

مرکه:

**توریالی**: **زلمیه! موږ چا پیداکړي یو؟**

**زلمی**: **موږ الله ﷻ پیداکړي یو.**

**توریالی**: **زلمیه! موږ د چا عبادت کوو؟**

**زلمی**: **موږ د الله ﷻ عبادت کوو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په مناسب اواز سره متن ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره لوست ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي، ښوونکی دې مرسته کوي.

- دوه، دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته جملې ووایي او بل دې د املا په توګه پر تختې ولیکي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د الله جل جلاله د یووالي په اړه دې خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| مخلوق | افریده شده |
| عبادت | ستایش، پرستش، بنده ګی |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په کورونو کې متن ښه ولولي او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.

دویم لوست

# حضرت محمد ﷺ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د حضرت محمد ﷺ پیژندل.





**پوښتنې**:

ـ آیا تاسو خپل پیغمبر حضرت محمد ﷺ پیژنئ؟

ـ مور او تاسې د چا امتیان یو؟

**حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ بنده او پیغمبر دی.**

**د حضرت محمد ﷺ د پلار نوم عبد الله و.**

**حضرت محمد ﷺ د ښو اخلاقو خاوند و.**

**زمور پیغمبر ﷺ ته ماشومان ډېر گران وو.**

**پر مور هم خپل پیغمبر ﷺ گران دی.**

**مور د خپل پیغمبر ﷺ اطاعت کوو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په مناسب اواز سره متن ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي په مخ کې متن ولولي.

-دوه، دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته یوه جمله ووایي او بل دې د املا په توګه پر تختې ولیکي، نور دې په کتابچو کې ولیکي.

| **لغت** | **معنا** |
| --- | --- |
| اطاعت | فرمانبرداری |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په کورونو کې متن ښه ولولي او بیا دې په کتابچو کې ولیکي.

## دریم لوست

# د پښتو ژبې هغه توري چې په دري او عربي ژبو کې نشته

**موخه**: د پښتو د تورو د غږونو سم اداکول او سم لیکل.






**پوښتنه:**

تاسو له چا سره کله هم پر پښتو ژبه خبرې کړې دي؟

| | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ټ | څ | ځ | ډ | ړ | ږ | ښ | ڼ |

ټ ټ ټ ټ ټ ټ ټ

څ څ څ څ څ څ څ

ځ ځ ځ ځ ځ ځ ځ

ډ ډ ډ ډ ډ ډ ډ

ړ ړ ړ ړ ړ ړ ړ

ږ ږ ږ ږ ږ ږ ږ

ښ ښ ښ ښ ښ ښ ښ

ڼ ڼ ڼ ڼ ڼ ڼ ڼ




- یو زده کوونکی دې توري د کتاب له مخې ولولي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

- یو زده کوونکی دې د ټولګي مخې ته راشي، توري دې د کتاب له مخې ولولي، نور دې ورپسې تکرار کړي.

- زده کوونکي دې په وار سره توري ولولي او بیا دې یو یو پرتختې ولیکي.

- یو زده کوونکی دې توري پر تختې ولیکي، بل دې ولولي او نور دې ورپسې تکرار کړي.

## د پښتو توري په کلمو کې

ټ ټولګی

څ څپلۍ

ځ ځنګل

ډ ډنډ

ړ ړوند

ږ ږلۍ

ښ ښکلا

ڼ پاڼه




زده کوونکي دې د پښتو خاص او ځانګړي توري له یاده زده او بیا دې په کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته تکرار کړي.

## خلورم لوست

# زموږ ټولګی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ساده کلمو زده کول.





**پوښتنه**:

ستاسو په ټولګي کې ټول څو تنه دي؟

**موږ په نوي ټولګي کې ناست یو. دا څلورم ټولګی دی.**

**هر مضمون د یوه ښوونکي له خوا تدرسیږي.**

**ایمل زموږ د پښتو مضمون ښوونکی دی.**

**ډېر ښه سړی دی. موږ ته ښه لوست وایي.**

**پر موږ خپل ښوونکی ګران دی.**

**خبره یې منو، خپل لوست په مینه لولو.**




- زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په چوپتیا سره لوست ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د لوست متن دې ولولي.

- دوه، دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې ورته یوه جمله له کتاب څخه ولولي، بل دې د تختې پرمخ د املا په توګه ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د (ورځ، جوړ، پیل) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| پایله | نتیجه |
| ستونزې | مشکلات |
| کال | سال |
| ټولګی | صنف |
| ښوونکی | معلم |
| زده کوونکي | شاګردان |




ټول زده کوونکي دې د (ټولګی، ناست، ولاړ، څلورم) کلمې په خپلو کتابچو کې ولیکي بیا دې په جملو کې وکاروي.

### پنځم لوست

# خبرې اترې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د خبرو کولو وړتیا ترلاسه کول.





**پوښتنه**:

تاسې نن له چا سره خبرې اترې کړې دي؟

**سلیمان**: عبدالرحمانه وروره! ستړی مه شې.

**عبدالرحمان**: سلیمانه ته هم ستړی مه شې.

**سلیمان**: عبدالرحمانه زه نن ښوونځي ته ځم.

**عبدالرحمان**: زه هم ځم.

**سلیمان**: ته په کوم ټولګي کې یې؟

**عبدالرحمان**: زه په څلورم (ب) ټولګي کې یم.

**سلیمان**: ډېر ښه ، عبدالرحمانه کورنۍ دنده دې ترسره کړې ده؟

**عبدالرحمان**: هو! کورنۍ دنده مې ترسره کړې ده.

**سلیمان**: ما هم خپله کورنۍ دنده ترسره کړې ده.

**عبدالرحمانه**: ډېره ښه ده. د خدای په امان.



## فعالیتونه:

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د لوست متن دې ولولي، ښوونکی ورسره مرسته کوي.
- دوه دوه زده کوونکي دې د ښوونکي په مرسته په خپل منځ کې خبرې اترې وکړي.

- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې ورڅخه پوښتنې وکړي، بل دې ځوابونه ورکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې د کتاب له متن څخه ورته یوه جمله ووایي، بل دې د تختې پرمخ ولیکي، نور زده کوونکي دې د تختې له مخې په کتابچو کې ولیکي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| ودان | آباد |
| پرونۍ | دیروز |
| دنده | وظیفه |



## کورنۍ دنده:

ټول زده کوونکي دې لوست ته ورته د خبرو اترو په شکل په خپلو کتابچو کې څو کرښې ولیکي.

# ډېر لګښت (اسراف)

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ډېر لګښت په زیانونو پوهېدل.





**پوښتنې**:

د بې ځایه او ډېر لګښت په اړه څوک څه ویلی شي؟

- **بې ځایه لګښت (اسراف) ښه کار نه دی.**
- **د هر شي په لګښت کې باید پام وشي.**
- **د اوبو له اخیستلو وروسته باید نل بند شي.**
- **له اړتیا پرته باید ګروپونه ونه لګول شي.**
- **د اسلام پاک دین هم بې ځایه مصرف منع کړی دی.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته نوی لوست ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د (لګښت، اړتیا، بې ځایه) کلمې د تختې پرمخ معنا او په جملو کې استعمال کړي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره لاندې نیمګړې جملې په مناسبو کلمو ډکې کړي.

- بې ځایه لګښت ........... نه دی.
- د هر شي په لګښت کې باید .............وشي.
- له اړتیا پرته باید څراغونه.................لګول شي.
- موږ باید خپل لګښت ته ..............پاملرنه وکړو.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د ټولګي مخې ته راشي، د ډېر او بې ځایه لګښت په اړه دې خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| لګښت | مصرف |
| پاملرنه | توجه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د بې ځایه لګښت په اړه څو جملې په کتابچو کې ولیکي.

# روغتیا

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د خپلې روغتیا په ساتنه پوهېدل.





**پوښتنه**:

تاسې خپلې روغتیا ساتنې ته څه ډول پاملرنه کوئ؟

**روغتیا د خدای ﷻ نعمت دی. موږ باید خپلې روغتیا ته پاملرنه وکړو، هره ورځ سپورت وکړو، غاښونه پر مسواک یا برس پریمینځو، خپل بدن او کالي پاک وساتو. ناپاک شیان ونه خورو. مېوې او سابه پاک پریمینځو، په چټلو اوبوکې لوبې ونه کړو. که ناروغه شو، باید ډاکټر ته ولاړ شو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته متن ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د (سپورت، اړتیا، مسواک، برس) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال او نور دې په کتابچو کې ولیکي.

- درې زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې د خپلې روغتیا ساتنې په اړه خبرې وکړي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې پرمخ لاندې نیمګړې جملې بشپړې کړي.
  - موږ باید خپلې روغتیا ته ......... وکړو.
  - نا پاک ............ شیان ونه خورو.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| روغتیا | صحت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د روغتیا په اړه څو جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي.

# ساده کلمې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د کلمې پېژندل.

احمد، قلم، کتاب، میز...



**پوښتنه**:

تاسو پوهېږئ چې کلمې څنګه او له څه شي جوړېږي؟

**هر معنا لرونکی لفظ چې په یو وار له خولې راووځي او د ویشلو وړ نه وي، ساده کلمه بلل کېږي.**

**لکه: احمد، محمود، قلم، کتاب، میز او نور.**

**کلمې له تورو جوړېږي او توري زموږ له خولې څخه د راوتلو غږونو انځورونه دي. په دې معنا چې له تورو کلمې جوړېږي.**

**لکه: کور، اوبه، قلم، بکس او نور.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په خپل منځ کې متن ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د متن یوه، یوه کرښه ولولي.

- دوه، دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته یوه جمله ووایي، بل دې پرتختې د املا په توګه ولیکي، نور دې هغه د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د (قلم، کتاب، میز) کلمې دې په جملو کې استعمال کړي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، دوې ساده کلمې دې پرتختې ولیکي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| توري | حروف |



## کورنۍ دنده:

ټول زده کوونکي دې څلور څلور ساده کلمې په جملو کې وکاروي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته ولولي.

نهم لوست

# خبرې اترې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او دخبرو اترو له لارې د ژبې زده کول.





**پوښتنه**:

آیا تاسو له چا سره د خبرو اترو له لارې ستونزه حل کړې ده؟

**ملالۍ**: زرغونې ستړې مه شې!

**زرغونه**: ته هم ستړې مه شې.

**ملالۍ**: خوشحاله اوسې.

**زرغونه**: نن څه کار کوې؟

**ملالۍ**: خپلې کورنۍ دندې ترسره کوم.

**زرغونه**: د کور په کارونو کې له مور سره کومک کوې؟

**ملالۍ**: هو: د کور په کار کې له مور سره مرسته کوم.

**زرغونه**: زه هم د کور په کارونو کې مرسته کوم.

**ملالۍ**: د خدای په امان، په مخه دې ښه.



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته پورتنی لوست په پټه خوله ولولي.

- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، پورتنی ډیالوګ دې په خپل منځ کې تمثیل کړي.

- دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته دوې جملې ولولي او هغه بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، نور زده کوونکي دې هغه د تختې له مخې ولیکي، ښوونکی دې څارنه او مرسته وکړي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي (مرسته، سترګې او خور) کلمې دې په جملو کې استعمال کړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| دنده | وظیفه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپله خوښه پورتني ډیالوګ ته ورته یو ډیالوګ په خپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې دوه دوه تنه د نورو په وړاندې تمثیل کړي.

لسم لوست

# زموږ کورنۍ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د خپلې کورنۍ پېژندل.





**پوښتنه**:

تاسو په کور کې یو له بل سره څه ډول مرسته کوئ؟

**زه میرویس د څلورم ټولګي زده کوونکی یم، په کورنۍ کې له مور، پلار، یوه ورور (اتل) او دوو خویندو (غوټۍ او زرمینې) سره یو ځای ژوند کوم.**

**مور د (زردالو او مڼو) یو باغ لرو. مور او پلار مې دواړه ښوونکي دي، ورور مې د ساینس پوهنځي د دریم ټولګي محصل دی. خویندې مې په اووم او پنځم ټولګیو کې زده کړې کوي.**

**مور او پلار مې چې له ښوونځي څخه کورته راشي، له ما او خویندو سره مې په درسونو کې مرسته کوي. ټول په ګډه د کور او باغ کارونه ترسره کوو، ټول خوښ او خوشحاله ژوند کوو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته متن په چوپتيا سره ولولي.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د متن يوه، يوه کرښه دې ولولي.
- درې زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، هر يو دې د خپلې کورنۍ غړي نورو ته ور وپيژني.
- څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي د (کور، خور او ورور) کلمې دې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال کړي، نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې وليکي.

- درې زده کوونکي دې په وار سره د لاندنيو جملو تش ځايونه په مناسبو کلمو سره ډک کړي.

- زه ميرويس د څلورم ټولګي ...... يم.
- مور او پلار مې دواړه ............ دي.
- ټول خوښ او خوشحاله .................. کوو.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ګډه | باهم |
| مرسته | کمک |
| کور | خانه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د خپلې کورنۍ او د کورنۍ د غړو په باب معلومات وليکي، بله ورځ دې نورو ته ولولي.

# خبرې اترې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د خبرو زده کول.





**پوښتنه**:

تاسو نن د کورنۍ له غړو سره خبرې اترې کړې دي؟

**زرمينه**: غوټۍ خورې السلام عليکم.

**غوټۍ**: خورې وعليکم السلام.

**زرمينه**: خورې تاسو نن څه کار کوئ؟

**غوټۍ**: ګرانې زه کالي مينځم.

**زرمينه**: خورې زه درسره مرسته وکړم؟

**غوټۍ**: ګرانې قربان دې شم، دومره ډېر نه دي، مننه.

**زرمينه**: ښه چې داسې ده، د خدای په آمان

**غوټۍ**: خور جانې د بيا ليدو په هيله، د خدای په آمان




- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته پورتنی ډیالوګ ولولي.

- دوه تنه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، پورتنۍ خبرې اترې دې د نورو په وړاندې په تمثیلي بڼه اجرا کړي.

- دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي او په خپل منځ کې دې یو ډیالوګ تمثیل کړي، ښوونکی دې مرسته او څارنه کوي.

- دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، په وار سره دې د (مرستې، غرمې) کلمې په جملو کې استعمال کړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| غرمه | چاشت |
| کالي | لباس |




ټول زده کوونکي دې په خپله خوښه په خپلو کتابچو کې یو یو ډیالوګ ولیکي، بله ورځ دې د یوه تن په مرسته د نورو په وړاندې تمثیل کړي.

# زموږ ښوونځی

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د ژبې زده کول.





**پوښتنه**:

تاسو په ښوونځي کوم کوم کارونه ترسره کوئ؟

**موږ ډېر ښه ښوونځی لرو، په ښوونځي کې ګلان، شنې ونې او روانې اوبه شته، زموږ ښوونځی د کرېکټ، واليبال او فوټبال لوبو لپاره ميدانونه لري. د کرېکټ، واليبال او فوټبال ډلې د ښوونځي په ميدانونو کې لوبې کوي. موږ هم د سپورت په ساعت کې له دې ميدانونو څخه ګټه اخلو او په کې لوبې کوو. موږ خپل ښوونځی او ټولګی پاک ساتو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته متن ولولي.
- درې زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د تختې پرمخ دې د ښوونځي په اړه په خپله خوښه یوه یوه جمله ولیکي.
- دوه، دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته دکتاب له مخې یوه یوه جمله ووايي، بل دې پرتختې ولیکي، نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي، ښوونکی دې مرسته او څارنه وکړي.
- څو زده کوونکي دې په وارسره د لاندېنیو جملو تش ځایونه د تختې پر مخ په مناسبو کلمو ډک کړي.

- موږ ډېر ښه ....... لرو.
- په ښوونځي کې ګلان، شنې ونې او روانې .......... شته.
- موږ خپل ښوونځی او ټولګی ....... ساتو.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| ښوونځی | مکتب |
| ټولګی | صنف |
| شین | سبز |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې پورته لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي.

# خبرې اترې

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او خبرو اترو له لارې د ژبې زده کول.





**پوښتنه**:

آیا تاسو نن له چا سره خبرې اترې کړې دي؟

**اجمل**: **ایمله! ستړی مه شې.**

**ایمل**: **په خیر اوسې.**

**اجمل**: **ایمله! چېرته ځې؟**

**ایمل**: **ټولګي ته ځم.**

**اجمل**: **ایمله! لومړی ساعت کوم مضمون لرو؟**

**ایمل**: **د پښتو مضمون دی، ته چېرته ځې؟**

**اجمل**: **زه هغه دوکان ته ځم.**

**ایمل**: **په دوکان کې څه کوې؟**

**اجمل**: **له دوکان څخه قلم اخلم او بیا درځم.**

## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په خپل منځ کې خبرې اترې وکړي.

- زده کوونکي دې په خپل منځ کې پورتنۍ خبرې اترې تمثیل کړي.

- دوه، دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته یوه جمله د املا په توګه ولولي، هغه بل دې د تختې پرمخ ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د (ساعت، مضمون، قلم) کلمې په جملو کې وکاروي، نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي او خبرې اترې دې تمثیل کړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| لومړی | اول |
| چیرته | کجا |
| ځم | می روم |

## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د نن ورځې لوست په خپلو کتابچو کې ولیکي او په بل درسي ساعت کې له ځان سره راوړي.

# باغ

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د باغ پر ګټو پوهېدل.





**پوښتنه**:

په پورته انځور کې څه شی وینئ؟

**د ګلالۍ کورنۍ یو باغ لري، د دوی په باغ کې د ګلانو بوټي او مېوه لرونکي ونې، لکه (زردالو، شفتالو، الوچې او منې) شته.**
**د دوی ټوله کورنۍ یو د بل په مرسته د ونو او ګلانو پالنه او روزنه کوي.**
**دوی له باغ څخه ښه حاصل اخلي، له دې لارې څخه د ژوند اړتیاوې پوره کوي. د ګلالۍ کورنۍ د ګډ کار او زیار له برکته آرام او خوشحاله ژوند کوي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته متن ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د (بوټي، ژوند، میوه) کلمې په جملو کې وکاروي او نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د باغ او ونو د ګټو په اړه دې خبرې وکړي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې پرمخ لاندې نیمګړې جملې بشپړې کړي.
  - د ګلالۍ کورنۍ یو ...... لري.
  - له دې لارې د ژوند ....... پوره کوي.
  - د ګډ کار او زیار له برکته ارام او خوشحاله ........ لري.

| لغت | معنا |
|---|---|
| پلوري | می فروشد |
| زیار | کوشش |
| اړتیاوې | ضرورت‌ها |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د څلورو څلورو ونو نومونه ولیکي، بله ورځ دې ټولګي ته راوړي او نورو ته دې ولولي.

پنځلسم لوست

# ښوونکی او زده کوونکي

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ژبې زده کول.





**پوښتنې**:

- څوک تاسو ته په ښوونځي کې لوست وایي؟

**ساعت اووه بجې وې، ښوونکی ټولګي ته راننووت، له سلام او لنډې پوښتنې، او حاضري اخیستلو څخه وروسته یې د کورنۍ دندې پر کتلو پیل وکړ، کله چې یې د میوند کورنۍ دنده ولیده، ډېر خوشحاله شو. میوند ته یې ډېر افرین ووایه، زده کوونکو ته یې لارښوونه وکړه چې میوند ته چک چکې وکړي.**

**ښوونکي موږ ټول وهڅولو چې خپلې کورنۍ وظیفې په ښه توګه سرته ورسوو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته متن ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د (ساعت، دنده، چک چک) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال کړي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د تختې مخې ته راشي، د کتاب له مخې دې یوه یوه جمله پرتختې ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وارسره د لاندېنیو جملو تش ځایونه په مناسبو کلمو ډک کړي.

- ښوونکی ټولګي ته .....
- میوند ته یې ډېر ......... وویل
- ښوونکي میوند ډېر .........

| لغت | معنا |
|---|---|
| دنده: | وظیفه |
| هڅول | تشویق کردن |
| ننووت | داخل شد |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د څو ښوونکو نومونه په کتابچو کې ولیکي.

# خواړه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د خوړو پر گټو پوهېدل.





**پوښتنه**:

تاسو په کورونو کې له کومو خوړو څخه گټه اخلئ؟

**ټول ژوندي موجودات خوړو او اوبو ته اړتیا لري، له خوړو پرته ژوند نه کېږي، ددې له پاره چې موږ خپل ژوند ته دوام ورکړو، خوړو ته اړتیا لرو. موږ باید تل داسې خواړه وخورو چې پاک او د بدن د اړتیا وړ شیان ولري. شېدې، هگۍ او د ډول ډول مېوو او سابو خوړل بدن ته گټه رسوي.**

**خواړه زموږ بدن ته انرژي او د کار توان ورکوي.**

**موږ باید تل پاک خواړه او پاکې مېوې وخورو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په چوپتیا سره متن ولولي.

- دوه، دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې ورته یوه جمله د املا په بڼه ولولي، بل دې پرتختې ولیکي او نور دې په کتابچو کې ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د (اړتیا، هګۍ، ګټه) کلمې دې په جملو کې استعمال کړي او نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د خوړو د ګټو په اړه دې خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| ګټه | فایده |
| اړتیا | ضرورت |
| توان | طاقت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په کورونو کې متن ولولي، بیا دې درې درې جملې د خوړو د ګټو په اړوند ولیکي، بله ورځ دې ټولګي ته راوړي او نورو ته دې ولولي.

# غنم

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د غنمو پیژندل.





**پوښتنه**:

آیا تاسو کله د غنمو کرل لیدلي دي؟

**غنم یو گټور نبات دی چې زموږ د خوړو لویه او ارزښتناکه برخه جوړوي. زموږ د هېواد په ډېرو برخو کې غنم کرل کېږي. کله چې غنم له ځمکې څخه ترلاسه شي. بیا یې په ژرنده کې اوړه کوي، له خمیره کېدو وروسته ورڅخه ډوډۍ پخېږي. غنم ډېر ډولونه لري، لکه: سره غنم، سپین غنم او نور چې هر ډول ځانته خصوصیات لري. موږ په کرنه کې له خپلې کورنۍ سره مرسته کوو او خپل درسونه هم لولو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته یو د بل په مرسته لوست ولولي.

- درې تنه زده کوونکي دې په خپله خوښه په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د (غنم، ډوډۍ، مرسته) کلمې دې په جملو کې استعمال کړي.

- دوه، دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته د کتاب له مخې یوه جمله ولولي، هغه بل دې پر تختې د املا په ډول ولیکي، نور زده کوونکي دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- دوه زده کوونکي دې په خپله خوښه په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د غنمو په هکله دې نورو ته معلومات ورکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| کرنه | کشت و زراعت |
| ارزښتناکه | قیمتي |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې د کورنۍ د غړو په مرسته د غنمو په هکله په خپلو کتابچو کې دوې دوې لنډې جملې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

# خبرې اترې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د خبرو زده کول.





**پوښتنه**:

څوک ويلي شي خلك د څه لپاره په خپلو منځونو کې خبرې کوي؟

**توريالى**: زلميه! السلام عليکم

**زلمى**: وعليکم السلام

**توريالى**: زلميه: دا ستا ورور دى؟

**زلمى**: هو! دا زما ورور دى.

**توريالى**: ستا ورور څه کار کوي؟

**زلمى**: زما ورور په نهم ټولگي کې دى.

**توريالى**: څوک له تاسو سره په لوستونو کې مرسته کوي؟

**زلمى**: زموږ سره په لوستونو کې زما ورور مرسته کوي.

**توريالى**: زلميه! غرمه له ما سره لاړشه؟

**زلمى**: وروره! ډېره مننه، د خداى په آمان.

**توريالى**: د خداى په آمان، په مخه مو ښه،



## فعالیتونه:

- څو زده کوونکي دې په وار سره د لوست یوه، یوه جمله د کتاب له مخې ولولي.

- زده کوونکي دې په وارسره له پورتني لوست څخه یوه، یوه جمله پرتختې ولیکي، نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- دوه زده کوونکي دې پورتنۍ خبرې د نورو په وړاندې تمثیل کړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

- دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د خبرو اترو په اړوند دې خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي، ښوونکی دې مرسته او څارنه کوي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| مننه | تشکر |
| مرسته | کمک |
| ورور! | برادر |
| غرمه | چاشت |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې پورتنۍ متن ولولي، بیا دې، دې ته ورته (ډیالوګ) په خپلو کتابچو کې ولیکي، بله ورځ دې د نورو په وړاندې د یوه بل تن په مرسته تمثیل کړي.

# غاښونه

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د غاښونو پر ساتلو پوهیدل.





**پوښتنه**:

د غاښونو پاک ساتل څه ګټې لري؟

**غاښونه د الله ﷻ یو لوی نعمت دی، د خوړو د ژوولو وسېله ده. ددې لپاره چې غاښونه مو خراب نه شي، باید هر سهار غاښونه پرمسواک او یا کریم او برس سره پریمینځو. د غاښونو برس کول ډېرې ګټې لري او موږ له ډول ډول ناروغیو او د غاښونو له خرابېدو څخه ساتي. موږ باید تل خپل غاښونه پاک وساتو، ترڅو روغتیا ته مو زیان ونه رسېږي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته د یو بل په مرسته متن ولولي.

- دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي او د غاښونو د پاک ساتلو پر ګټو دې خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي.

- دوه دوه زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، یو دې ورته یوه جمله د کتاب له مخې ووایي، بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د غاښونو د پاک ساتلو په باره کې یوه یوه ګټه نورو ته په ګوته کړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ژوول | جویدن |
| سهار | صبح |
| ناروغیو | امراض |
| تل | همېشه |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د غاښونو د پاک ساتلو په اړوند دوې دوې کرښې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

# ښه زده کوونکی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ښه زده کوونکي په صفتونو پوهېدل.





**پوښتنه**:

په پورتني انځور کې څه وینئ؟

**هغه څوک چې ښه او نیک اخلاق ولري، ښه زده کوونکی دی، پر هر چا سلام اچوي او د هر چا درناوی کوي، له نورو سره مینه کوي او د چا بې احترامي نه کوي.**

**ښه زده کوونکی د کور په کارونو کې فعاله ونډه اخلي. پر خپل وخت درسونه لولي او کورنۍ دندې ترسره کوي. له دې امله پرهر چا ګران او په ښوونځي کې بریالی وي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په خپلو منځونو کې متن ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د کتاب له مخې دې یوه یوه جمله پر تختې ولیکي، نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- دوه دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي. یو دې د کتاب له مخې ورته یوه جمله ووایي او بل دې د املا په توګه پر تختې ولیکي او نور دې په کتابچو کې ولیکي.

- یو تن دې د ټولګي مخې ته راشي او د ښه زده کوونکي په اړه دې نورو ته خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ښه | خوب |
| ونډه | سهم |
| بریالی | کامیاب |
| مینه | محبت |



## کورنی دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي، په خپلو کتابچو کې دې د ښه زده کوونکي څو صفتونه په خپله خوښه ولیکي. بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

# ځاله

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او له زهر لرونکو حشراتو څخه ځان ساتل.





**پوښتنه**:

تاسو کله د مرغانو ځالې لیدلې دي؟

**ټول الوتونکي د ژوند د دوام له پاره ځالې جوړوي، په ځالو کې هګۍ اچوي او بیا له هګیو څخه بچي را ووځي. ځینې الوتونکي په ونو، ځینې نور یې د ځمکې پرمخ پټ ځای او یو شمېر یې د غرونو په لوړو برخو کې ځالې جوړوي.**

**کله کله ماران او نور حیوانات د الوتونکو هګۍ او بچي خوري، ډېر وخت ماران د الوتونکو په ځالو کې ځانونه پټوي، ددې لپاره چې ماران یې ونه چیچي، هوښیار ماشومان او زده کوونکي د الوتونکو ځالو ته لاس نه وروړي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته لوست ولولي.

- درې تنه زده کوونکي دې په وار سره د (هګۍ، دوام، ژوند) کلمې د تختې پرمخ په جملو کې وکاروي او نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- دوه دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته یوه جمله ولولي او بل دې د املا په توګه پرتختې ولیکي، ښوونکی مرسته او څارنه کوي.
- دوه زده کوونکي دې په وارسره د ځالې په اړوند په خپله خوښه پرتختې یوه یوه جمله ولیکي.
- دوه زده کوونکي دې په وارسره د الوتونکو په ځالو کې د لاس وهلو د زیانونو په اړوند خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ځاله | اشیانه |
| هګۍ | تخم |
| هوښیار | هوشیار |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي، بیا دې د ځالې په اړوند دوې کرښې ولیکي او بله ورځ دې نورو ته واوروي.

## دوه و یشتم لوست

# کوتره او مېږی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د مرستې پر مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه**:

تاسو کوم الوتونکی له مرگ څخه ژغورلی دی؟

**یوې کوترې په اوبو کې یو مېږی ولید. نژدې و چې مېږی په اوبو کې ډوب شي. کوترې د ونې یوه پاڼه په اوبو کې د مېږي مخې ته واچوله. مېږی پر پاڼه وخوت او له مرگ څخه بچ شو، بله ورځ ښکاري کوتره په نښه کړه. د مېږي ورته پام شو او د ښکاري پښه یې وچیچله. د ښکاري لاسونه ورپرېدېدل. نښه یې خطا شوه او کوتره والوته. باید مونږ له کمزورو سره مرسته وکړو چې د دنیا او اخرت گټې مو په برخه شي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په خپل منځ کې لوست ولولي.

- زده کوونکي دې پر ډلو وویشل شي، هره ډله دې لوست په خپل منځ کې ولولي، بیا دې د هرې ډلې استازی په وار سره د لوست یوه یوه برخه ولولي.

- دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته د کتاب له مخې دوې جملې ولولي او بل دې د املا په ډول پر تختې ولیکي.
- درې زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د کېسې په اړه دې خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي، ښوونکی دې مرسته او څارنه وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ډوب | غرق |
| پاڼه | برګ |
| نښه | نشان |
| مېږی | مورچه |
| ښکاري | شکارچي |
| چیچل | ګزیدن |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې پورتنۍ کیسه ولولي، بیا دې هر یو په خپلو کتابچو کې ولیکي او بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

# نوی زده کوونکی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د ژبې زده کول.





**پوښتنه**:

له تاسو څخه کوم یوه بل ښوونځي ته سه پارچه اخیستې ده؟

**پرون زمور ټولګي ته یو نوی زده کوونکی راغی، دده نوم ایمل و، له ټولو ټولګیوالو سره یې ستړي مشي وکړه، له ستړي مشي وروسته زمور د ټولګي کپتان د نورو په استازیتوب له هغه سره په درسونو کې د هر ډول مرستې ژمنه وکړه، ایمل هم ورڅخه ډېره مننه وکړه او د دوی له مینې او محبت څخه ډیر خوشحاله شو.**



### فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکی وروسته لوست ولولي.

- درې زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د (پرون، ژمنه، کپتان) کلمې دې پرتختې په جملو کې استعمال کړي، نور دې هغه د تختې له مخې په کتابچو کې ولیکي.

- دوه دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته د کتاب له مخې یوه جمله ولولي، بل دې د املا په ډول پرتختې ولیکي، نور دې د تختې له مخې په کتابچو کې ولیکي.

- دوه زده کوونکي دې په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راشي، په وار سره دې له خپلو ټولګیوالو سره د مرستې په باب خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي، ښوونکی دې مرسته او څارنه وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| استازی | نماینده |
| ژمنه | وعده |
| پرون | دیروز |



### کورنۍ دنده:

زده کوونکی دې په خپلو کتابچو کې د لوست په هکله دوې دوې کرښې ولیکي، بله ورځ دې په ټولګي کې نورو ته واوروي.

## څلرويشتم لوست

# زده کوونکی په کورکې

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د ژبې زده کول.





**پوښتنه**:

تاسو په کورکې له چا سره مرسته کوئ؟

**زما نوم توريالی دی. زه له خپلو درسونو سره ډېره مينه لرم. کله چې له ښوونځي څخه کورته راشم، له خپلې کورنۍ سره يو ځای ډوډۍ خورم. د لمانځه له اداکولو وروسته خپلې کورنۍ دندې ترسره کوم. که په لوست کې ستونزه ولرم، له خپل پلار او مور څخه مرسته غواړم. له کورنۍ دندې وروسته له مور او پلار سره په کارونو کې مرسته کوم. موږ د کورنۍ غړي يو له بل سره مينه لرو او خوشحاله ژوند کوو.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکی څخه  وروسته لوست ولولي.
- دوه زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، لاندې نیمګړې جملې دې پر تختې ولیکي او بشپړې دې کړي. نور زده کوونکي دې هغه په کتابچو کې ولیکي.

- زه له خپلو درسونو سره ......... لرم.
- زما نوم ...... دی.
- بیا له کورنۍ سره یو ځای ........... خورم.

- دوه دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي. یو دې د کتاب له مخې یوه جمله ولولي، بل دې د املا په ډول پرتختې ولیکي او نور دې هغه په کتابچو کې ولیکي.
- دوه زده کوونکي دې په وارسره په کور کې له مور او پلار سره د مرستې په باب خبرې وکړي او نور دې ورته غوږ ونیسي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| ستونزه | مشکل |
| لمونځ | نماز |
| ډوډۍ | نان |
| غړي | اعضا |
| کورنۍ دنده | وظیفۀ خانگی |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې په کورونو کې لوست ښه ولولي، بیا دې له لوست څخه درې درې کرښې ولیکي، بله ورځ دې ټولګي ته راوړي او نوروته دې واوروي.

# سېلاب

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او د سېلاب له زیانونو څخه د ځان ساتلو پر لارو چارو پوهیدل.





**پوښتنه**:

تاسو کله د سېلاب له خطر سره مخامخ شوي یاست؟

**پسرلی د بارانونو موسم دی، په دې وخت کې باران اوري، سېلابونه جوړوي، خو ډېر سېلابونه د اوړي په موسم کې د ډېر او تیز اورښت له امله رامنځ ته کېږي، هرڅه، لکه: کورونه، کرنیزې ځمکې، ونې او بوټي له ځان سره وړي.**

**له دې امله باید زده کوونکي د تیز باران پر وخت ځانونه امن ځای ته ورسوي، د پلونو لاندې ونه دریږي او له هغو ځایونو څخه چې د سېلاب د راوتلو امکان ولري، ځانونه لوړو ځایونو ته ورسوي، ترڅو ورته زیان ونه رسیږي.**


## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته متن په خپل منځ کې ولولي.

- څو زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د متن یوه یوه جمله دې پرتختې ولیکي، نور دې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- څو زده کوونکي دې د ټولګي مخې ته راشي، په وارسره دې د سېلاب په اړوند نورو ته معلومات ورکړي.

- څو زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، په وارسره دې د (موسم، اورښت، باران، سېلاب) کلمې په جملو کې وکاروي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| اورښت | باران |
| تېز | شدید |
| کچه | اندازه |


## کورنی دنده:

زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې د سېلاب په هکله یوه یوه کرښه ولیکي او بله ورځ دې نورو ته واوروي.

## شپږ ویشتم لوست

# مرسته

**موخه:** د متن سم لوستل، لیکل او د مرستې پر مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه:**

ستاسې په فکر کوم کسان مرستې ته اړتیا لري؟

**زرغونه او ملاله ښوونځي ته روانې وې، ویې لیدل چې یوه نجلۍ (ګلالۍ) پر ځمکه ولویده، ویې ژړل. زرغونې ورته وویل: پروا مه کوه، ژاړه مه، زه به ستا کتابونه در ټول کړم.**

**زرغونې د ګلالۍ کتابونه ورټول کړل او کالي یې ورپاک کړل.**

**بیا یې ګلالۍ ته وویل: څه چې ښوونځي ته ولاړې شو، ځکه ډېر لږ وخت پاتې دی، لوست پیل کېږي. زرغونې وویل: زموږ وظیفه ده چې د اړتیا په وخت کې له هر چا سره مرسته وکړو.**




- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته لوست ولولي.

- درې زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، لاندې نیمګړې جملې دې په مناسبو کلمو سره بشپړې کړي.

- زرغونه او ملالی ....... ته روانې وې.
- زه به ستا ............ درټول کړم.
- ځکه ډېر لږ وخت ............... دی.

- دوه دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې ورته یوه جمله له کتاب څخه ولولي او بل دې پرتختې ولیکي.

- دوه زده کوونکي دې په وارسره د مرستې په باب خبرې وکړي.

| لغت | معنا |
|---|---|
| ژړا | ګریه |
| پیل | شروع |




زده کوونکي دې لوست ولولي، بیا دې په خپلو کتابچو کې د مرستې په هکله درې درې کرښې ولیکي او بله ورځ دې نورو ته واوروي.

## اووه ويشتم لوست

# ژوند

**موخه**: د متن سم لوستل، ليکل او د ژوند پر مفهوم پوهېدل.





**پوښتنه**:

تاسې پوهېږئ چې ژوند څومره ارزښت لري؟

**ژوند د الله ﷻ لوی نعمت دی. ژوند هر ژوندي ته ګران دی، رښتيا هم ژوند ځانګړې ښکلا لري. انسان يو ټولنيز مخلوق دی. په ټولنه کې ژوند کوي. يوازې ژوند د انسان لپاره ډېر بې خونده وي. موږ ته په کار ده چې په ژوند کې د دين او دنيا کارونو ته پاملرنه وکړو او ژوند داسې سمبال کړو چې ګټه يې نورو ته هم ورسېږي.**



## فعالیتونه:

- زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په خپل منځ کې لوست ولولي.

- درې زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي، د (ژوند، ښکلا، سمبال) کلمې دې په جملو کې استعمال کړي، نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.

- دوه، دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته ر اشي، یو دې ورته د کتاب له مخې یوه جمله ولولي، بل دې د املا په توګه پر تختې ولیکي.

- دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د ژوند په اړه دې خبرې وکړي، نور دې ورته غوږ ونیسي او ښوونکی دې مرسته او څارنه وکړي.

| لغت | معنا |
| --- | --- |
| سمبال | ترتیب |
| ټولنه | جامعه |
| ښکلا | زیبایي |
| یوازې | تنها |



## کورنۍ دنده:

زده کوونکي دې متن ولولي بیا دې د ژوند په باب دوې دوې کرښې ولیکي او بله ورځ دې په ټولګي کې د نورو په وړاندې ولولي.

**اته ویشتم لوست**

# له ناروغیو مخنیوی

**موخه**: د متن سم لوستل، لیکل او له ناروغیو څخه د مخنیوي پر لارو چارو پوهیدل.





**پوښتنه**:

څه وکړو، ترڅو په ناروغۍ اخته نه شو؟

**ددې لپاره چې ناروغه نه شو، موږ باید په خپل ورځني ژوند کې ځینو ټکو ته پاملرنه وکړو:**

**باید پاک او مناسب خواړه وخورو، ځان، جامې او هغه لوښي چې د خوراکي توکو د خوړلو پر وخت ورڅخه کار اخلو، پاک پریمینځو او لمر ته یې کیږدو. پر خپل وخت د بېلا بېلو ناروغیو واکسین وکړو. د خپلې روغتیا ساتنې لپاره سپورت وکړو، لکه چې وایي: (روغ عقل په روغ بدن کې وي) همدارنګه خپل چاپېریال پاک وساتو. په هر ځای کې د خوسا شوو موادو له غورځولو ډډه وکړو، نو بې له شکه به مو د ډېرو ناروغیو مخه نیولې وي.**



**فعالیتونه:**

- زده کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته په خپل منځ کې لوست ولولي.
- درې زده کوونکي دې په وار سره د تختې مخې ته راشي د (چاپیریال، روغتیا، خوسا) کلمې دې د تختې پرمخ په جملو کې استعمال کړي او نور دې د تختې له مخې په خپلو کتابچو کې ولیکي.
- دوه زده کوونکي دې د تختې مخې ته راشي، یو دې د کتاب له مخې ورته دوې جملې ولولي، بل دې د املا په ډول پرتختې ولیکي او نور دې د تختې له مخې په کتابچو کې ولیکي.
- دوه زده کوونکي دې په وار سره د ټولګي مخې ته راشي، د ځینو ناروغیو په اړه دې خبرې وکړي او ښوونکی دې مرسته او څارنه کوي.

| **لغت** | **معنا** |
|---|---|
| خوسا | پوسیده |
| چاپیریال | محیط |
| ناروغ | مریض |
| ورځني | روزه مره |
| روغتیا | صحت |



**کورنۍ دنده:**

زده کوونکي دې لوست ولولي، بیا دې د ناروغیو د مخنیوي په هکله درې درې کرښې ولیکي او بله ورځ دې نورو ته واوروي.

# د پوهنې ترانه

پوهنه ده رڼا وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

وطن زما یې ځان له تانه شم قربان
ته وینه د افغان ته لوړ په ټول جهان

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

اباد او سي اباد وطنه ته شي ښاد
مونږ سرښندو په تا او ساتو دې ازاد

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

ته کور یې هم مې ګور ته پلار یې هم مې مور
ته زړه یې د اسیا زما د سترګو تور

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

ته ننګ یې د اریا او تاج یې د یما
ځاریږمه له تا افغانستان زما

پوهنه ده رڼا، وطن ته مو ښکلا
کتاب او قلم زمونږه رهنما

محمد مُعین مرستیال